دریم لوست　　　　　　　　　　　　　　　　　　　　**وخت: دوه درسي ساعتونه**

| سرلیکونه | د مطالبو بیان |
|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | **کورنۍ** |
| ۲- لویې موخې | د کورنۍ له اهمیت سره آشنا کیدل. |
| ۳- کوچنۍ موخې | له زده کوونکو څخه هیله کېږي چې د دې درس په لوستلو سره لاندې موخو ته ورسیږي.<br>• د کورنۍ اهمیت ته پاملرنه وکړي.<br>• د انسان د اړتیا وو د تامینولو په باره کې د کورنۍ له رول سره آشنا شي.<br>• دکورنۍ په هکله مثبت نظر پیدا کړي.<br>• دکورنۍ په چاروکې له برخه اخیستو سره مینه پیدا کړي. |
| ۴- دښوونې لار | د متن لوستل، د لوست تشریح، پوښتنې او ځوابونه د مسئلې حل او پلټنه. |
| ۵- د زده کړې د اړتیا وړ وسایل | درسي کتاب، د ښوونکي د لارښود کتاب، تخته، تباشیر او د لوست اړوند انځورونه. |
| ۶- د ارزونې لار | ګړنیزه ( شفاهي) عملي کار، لیکنه. |
| ۷- درسي ساعتونه | دغه لوست په دوو برخو وېشل کېږي او هره برخه یې په یوه درسي ساعت کې تدریس کېږي. |
| **لومړی برخه (په یوه درسي ساعت کې دې تدریس شي)** | **د لوست پیل ( ۵ دقیقې)**<br>سلام اچول او له زده کوونکو سره دعاطفي اړیکو نیول او حاضري اخیستل.<br>**لومړی فعالیت (۵ دقیقې)**<br>فعالیت دې د مسئلې د حل او پلټنې د دود له مخې له زده کوونکو سره عملي کړئ. |

**د لومړي فعالیت ځوابونه:**

۱-که چېرې دکورنۍ زړه سواند غړي نه وای، زموږ ژوند به له سختو ستونزو ډک و او موږ نشوه کولای چې خپل ژوندته ادامه ورکړو.

۲- په زیاترو کورنیو کې د کورنۍ اصلي غړي عبارت وي له: پلار، مور، وروڼو، خویندو او کله کله نیکه ګان، نیاګانې، ترونه، تریندي او داسې نور. په دې ځای کې باید دزده کوونکو ځوابونو ته پاملرنه وکړو څکه چې پوښتنې هغوی ته متوجه دي.

**متن** ( **۱۰- دقیقې**)

د درس متن تشریح کړئ او بیا له زده کوونکو نه پوښتنې وکړئ.

**دویم فعالیت** ( **۱۰ دقیقې**)

فعالیت د مسئلې د حل او پلټنې د دود له مخې له زده کوونکو سره ترسره کړئ.

**د دویم فعالیت ځوابونه:**

۱-کورنۍ یوازې په کوچنیوالي کې د خپلو غړو څارنه، نه کوي، بلکې ټول عمر د هغوی څارنه او پالنه کوي. د بېلګې په توګه: کله چې مور او یا پلار ناروغه کیږي، د کورنۍ نورغړي د هغوی پالنه کوي. له خپلو ناروغو غړو سره مالي مرسته او خوا خوږي کوي او همدارنګه له خپلو سپین ږیرو او سپین سرو سره مالي مرسته او خوا خوږي کوي او تر ټولو مهمه یې دا چې د کورنۍ ټول غړي د یو او بل له مهربانۍ او خوشامندۍ څخه برخمن کیږي.

**دویم متن** ( **۱۰ دقیقې**)

متن زده کوونکو ته تشریح کړئ او پوښتنې ترې وکړئ. په پای کې دې د زده کوونکو څخه یو کس د درس متن په لوړآواز سره ولولي.

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکو ته دنده ورکړئ چې:

۱- د درس لنډیز په خو کرښوکې ولیکي.

۲- دلوست د وروستۍ برخې د پوښتنو ځوابونه په متن کې پیدا کړي او پخپلو کتابچوکې یې ولیکي.

۳- د لوست وروستی فعالیت تر راتلونکي اوونۍ پورې په څیر سره سرته ورسوي.

| | |
|---|---|
| **دویمه برخه ( په یـــوه درســـي ساعت کې دې تدریس شي)** | **د لوست پیل ( ۵ دقیقې)**<br>سلام اچول او له زده کوونکو سره د عاطفي اړیکو نیول او حاضري اخیستل.<br>**د لوست تکرار (۲۰ دقیقې)**<br>• انسان دې ته اړدی چې له نورو سره اړیکي ټینګ کړي.<br>• انسان د ټول عمر په اوږدوکې، کورنۍ ته اړتیا لري.<br>• انسان کله چې پیداشي، نه غرېږدی شي او نه پر لاره تلای شي؛ هغه ټول په کورنۍ کې زده کوي.<br>• کورنۍ له مینې او مالی پلوه د خپلو غړو پلوي کوي.<br>• هغه هلکان چې د مختلفو دلیلونو له کبله خپل مور او پلار له لاسه ورکوي، د نورو کورنیو له خوا یې پالنه کېږي.<br>**د پوښتنو ځوابونه ( ۱۰ دقیقې)**<br>۱- انسان له مالی، ټولنیز او عاطفي پلوه، کورنۍ ته اړتیا لري.<br>۲-کورنۍ زموږ لپاره کور، کالي او ډوډۍ برابروي، له خطرونو څخه مو ساتي او زموږ مینې او محبت ته اړتیاوې مو را پوره کوي.<br>۳-کورنۍ په هغو باندې ډېره پېرزوینه کوي او کله چې له ستونزو سره مخامخ شي، ملاتړورڅخه کوي.<br>۴-کورنۍ خپلو ماشومانو ته پر لاره تلل، د ژوندانه څرنګوالی او له نورو سره د اړیکو نیولو ادبونه ورزده کوي.<br>**وروستی فعالیت (۱۰ دقیقې)**<br>څو کسه زده کوونکي دې هغه ځوابونه چې په خپلوکتابچو کې یې لیکلي دي، د ټولګی په وړاندې ولولي، ښاغلی ښوونکی دې دهغو غوره ټکي د تختې له پاسه ولیکي او تېروتنې دې ور اصلاح کړي.<br>د اولادونو ځینې غوره دندې دا دي:<br>۱- د خپل مور او پلار او د کورنۍ دمشرانو درناوی دې وکړي.<br>۲- هغه چارې چې دوی ته سپارل کېږي، په غور سره دې سرته ورسوي.<br>۳- خپل درسونه دې په ټینګه سره ولولي.<br>۴- دکور په چاروکې دې له خپل مور او پلار سره مرسته وکړي.<br>۵- له هغه لوبو څخه دې پرهیز وکړي چې دنورو د ازار لامل ګرځي |

## . د ښوونکي لپاره زياتي معلومات

**کورنۍ او دهغې اهميت**:

کورنۍ د ټولنې دجوړيدو تر ټولو کوچنۍ واحد دی. کورنۍ لږ تر لږه له يوې ښځې او سړه څخه جوړيږي، خو امکان لري چې نيکه ګان، نياګانې، ورونه او خويندې هم په کورنۍ کې وي. کورنۍ يو ټولنيز جوړښت دی چې د بشريت د تاريخ په اوږدو کې يې په ټولو ټولنو کې شتون درلود. له کورنۍ پرته دټولنې دوام او پاينښت ناممکن دی. زموږ ټولې بنسټيزې اړتياوې لکه: د مثل توليد، د اولادونو روزنه، لومړنۍ زده کړې، مالي او د محبت پېرزوينه، د پيدا ښت څخه تر زړښت پورې په دغه ټولنيز جوړښت کې تر سره کيږي.

**د کورنۍ د جوړيدو موخې**:

د کورنۍ دجوړيدو ځينې مهمې موخې دا دي:

**۱-** د سالمې ټولنې جوړيدل:

د کورنۍ دجوړيدو يوه موخه داده چې د انسانانو جنسي غوښتنې په منځني حد او د قانون په چوکاټ کې وساتي. انسانان له پخوا څخه په دې پوهيدلي وو چې په جنسي مسلو کې بايد ګډو ډې نه وي بلکې د واده او کورنۍ دجوړيدو له لارې هغه تر خپلې ولکې لاندې راولي.

**۲-** دبنسټيزو اړتياوو تامينول: ماشوم د خپلې مور او پلار او نورولو يانو پالنې ته ډيرګه اړتيا لري. په کورنۍ کې د انسان بنسټيزې اړتياوې لکه: خواړه، کالي، استوګنځی، روغتيا، ورځنۍپالنه، روزنه او داسې نور، تامينيږي.

**۳-** د نسلونو پاينښت: د کورنۍ دجوړيدو يوه بله موخه د نسلونو پاينښت دی. انسانان خپل اولادونه دخپل ژوندانه پاينښت بولي او له دغې لارې څخه د خپل ځان د ( تل پاتې کيدو) پوښتنې ته ځواب ورإندې کوي. کورنۍ دمشروع نسل د توليد لپاره شرايط برابروي او اولادونه تر خپلې څارنې او روزنې لاندې نيسي.

**۴-** د اولادونو اجتماعي کيدل: د کورنۍ د جوړيدو له موخو څخه بله يې د اولادونو روزنه او د ټولنې دفعالو غړو په توګه د هغوی روزل دي. انسان د ژوندانه له لومړۍ ورځې څخه دټولنې په ټولو منل شوو ارزښتونو او فرهنګي کړو وړو باندې نه پوهيږي بلکې کرار، کرار هغه زده کوي. کورنۍ ډېر مهم او بنسټيزفرهنګي عناصر خپلو ماشومانو ته ورزده کوي. له دې کبله کورنۍ د ښوونځي په څېر هم ده. د کورنۍ زده کړې اغېز د ښوونځي تر زده کړې ډېر پوخ اوژور وي.

| سرليکونه | د مطالبو بيان |
|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | **کورنۍ** |
| ۲- لويې موخې | د بريالۍ کورنۍ د ځانګړتياوو پېژندل. |
| ۳- کوچنۍ موخې | له زده کوونکو څخه غوښتل کېږي چې د دې درس په لوستلو سره لاندې موخو ته ورسيږي.<br>• په کورنۍ کې د دندې اهميت درک کړي.<br>• په کورنۍ کې د دندې په وړاندې د مسؤوليت احساس وکړي.<br>• د خپل مور او پلار د زحمتونو درناوی وکړي.<br>• په کورنۍ کې د مرستې اهميت درک کړي.<br>• د مرستې کولو روحيه پکې پياوړې شي.. |
| ۴- دښوونې لار | د متن لوستل، د لوست تشريح، پوښتنې او ځوابونه، مستقيم تدريس. |
| ۵- د زده کړې د اړتيا وړ وسايل | درسي کتاب، د ښوونکي د لارښود کتاب، تخته، تباشير او د لوست اړوند انځورونه. |
| ۶- د ارزونې لارې چارې | ګړنيزه ( شفاهي) پوښتنې او ځوابونه |
| ۷- درسي ساعتونه | دغه لوست په درو برخو وېشل کېږي او هره برخه به يې په يوه درسي ساعت کې تدريس کېږي. |
| لومړی برخه (په يوه درسي ساعت کې دې تدريس شي) | **د لوست پيل ( ۵ دقيقې)**<br>سلام اچول او له زده کوونکو سره دعاطفي اړيکو نيول او حاضري اخيستل. او نور مقدماتي کارونه.<br>**لومړی فعاليت (۵ دقيقې)**<br>دغه فعاليت له زده کوونکو سره د مستقيم تدريس د ليدلوري د دود له مخې تر سره کړئ. |

| | |
|---|---|
| | **د لومړي فعالیت ځوابونه:**<br>۱- د دې لپاره چې کارونه په ښه توگه سرته ورسېږي، له دې پرته به په کورکې گډوډي منځته راشي.<br>۲- په دې صورت کې یا کار سرته نه رسېږي او یا دا چې ځینې غړي بیکاره پاتې شي او ځینې نور بې ټولې چارې سرته ورسوي.<br>۳- په کورنیو کې د اولادونو د دندو تر منځ لږ و ډېر تفاوت موجود وي. له دې کبله باید د زده کوونکو ځوابونه واورو.<br>**متن ( ۳۰ دقیقې)**<br>د ( مسؤولیت احساس او مرسته) د درس متن شرح کړئ او بیا له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړئ.<br>**د لوست پیل (۵ دقیقې)** |
| **دویمه برخه**<br>**( پـه یـوه درسـي سـاعت کـې دې تدریس شي)** | سلام اچول او له زده کوونکو سره د عاطفي اړیکو نیول، حاضري اخیستل او نور رومبني کارونه.<br>**دویم فعالیت (۱۰ دقیقې)**<br>د مشورې په درس پورې اړوند فعالیت چې د لوست دویم فعالیت کېږي، د مستقیم تدریس د لید لوري د دود له مخې له زده کوونکو سره تر سره کړئ.<br>**د دویم فعالیت ځوابونه:**<br>۱- نه<br>۲- هغه څوک چې موږ مشوره ور سره کوو، باید دا لاندې ځانگړتیاوې ولري:<br>۱- پوره پوهه ولري؛<br>۲- خیر غوښتونکی وي.<br>۳- زموږ د راز ساتونکی وي.<br>۴- بخیل ، حریص او ډارن نه وي.<br>**متن ( ۲۵ دقیقې)**<br>د ( مشورې او نظم ) درس متن شرحه کړئ او بیا له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړئ. |

| | |
|---|---|
| | **کورنۍ دنده ( ۵ دقیقې)**<br>له زده کوونکو څخه وغواړئ چې:<br>۱- د لوست لنډیز په څو جملو کې ولیکي؛<br>۲- د پوښتنې ځوابونه د لوست له متن څخه پیدا کړي او وبې لیکي.<br>۳- د درس وروستی فعالیت په غور سره سرته ورسوي او په راتلونکې اوونۍ کې یې له ځانه سره راوړي. |
| **دریمه برخه**<br>**( پــه یــوه درســي ســاعت کـــې دې تدریس شي)** | **د لوست پیل (۵ دقیقې)**<br>سلام اچول او له زده کوونکو سره د عاطفي اړیکو نیول، حاضري اخیستل او نور ړومبني کارونه.<br>**د لوست تکرار (۵ دقیقې)**<br>• کله چې کوم کار موږ ته راسپارل کېږي، باید چې هغه په زړه سوي او مینې سره سرته ورسوو.<br>• زموږ میندې او پلرونه د خپلو اولادونو په هکله د مسؤولیت احساس کوي.<br>• که چېرې د یوې کورنۍ غړي یوله بله سره مرسته وکړي، کارونه یې په بیړه سره سرته رسېږي او پر چا باندې زیات فشار نه راځي.<br>• مشوره کول د نورو له تجربو او عقل څخه ګټه اخیستنه ده.<br>• اولادونه دې د خپلو مهمو پرېکړو په باره کې د خپلو میندو او پلرونو سره مشوره وکړي.<br>• نظم د دې لامل کېږي چې کارونه په خپل ټاکلي وخت په ښه توګه تر سره شي. د دې لپاره چې زموږ په کارونو کې نظم موجود وي، باید له خپلو کارونو لپاره یو کاري پلان ولرو.<br>• **د پوښتنو ځوابونه (۱۵ دقیقې)**<br>۱- کارونه په سمه توګه نه تر سره کېږي.<br>۲- مرسته کول د دې لامل کېږي چې کارونه په بیړه سرته ورسیږي. د کورنۍ ټول غړي په کارونو کې ونډه واخلي او د کورنۍ په ځینو غړو باندې د کار فشار زیات نشي.<br>۳- مشوره کول د نورو له عقل او تجربې څخه ګټه اخیستنه ده. کله چې د یوې کورنۍ دغړو په منځ کې مشوره موجوده وي، په کارونو کې یې نیمګړتیا او عیب هم کم وي.<br>۴- کله چې نظم موجود نه وي، کارونه په ټاکلي وخت او ښه ډول نه تر سره کېږي.<br>۵- منظم خلک کاري پلان لري. کارونه یې له پلان سره سم په ټاکلي وخت کې تر سره کېږي.<br>**وروستی فعالیت (۱۰ دقیقې)**<br>د ټولو زده کوونکو پوښتنې وګورئ او ډاډ ترلاسه کړئ چې ټولو زده کوونکو خپلې کورنۍ دندې تر سره کړي دي. له ( تکړه، منځنیو او کمزورو) زده کوونکو څخه یو څو کسه د ټولګي مخې ته دروغواړئ او ورته ووایئ چې خپل ځوابونه نوروته واوروي او ورته تشریح یې کړي. |

## د ښوونکي لپاره زياتي معلومات

د انسان له ځانګړتياوو څخه يوه بې داده چې کړه وړه يې د پوهې پر بنسټ تر سره کېږي. انسان هر هغه کار چې غواړي سرته يې ورسوي، بايد مخکې له مخکې يې د هغه په باره کې لازم معلومات تر لاسه کړي وي.

د پوهې او معلوماتو ترلاسه کول بېلا بېلې لارې لري لکه:

فکر کول، مطالعه کول او مشوره کول.

لکه څرنګه چې وليدل شول ، د انسان لپاره د معلوماتو د ترلاسه کولو يوه لار، مشوره کول او د نظر شريکول دي. لکه چې خوشحال خان خټک په دې باره کې داسې وايي.

نوراني کا هغه ځای چې سره کښيني

ديرته څلور هوښيار په مشورت

**د مشورې ګټې:**

هغه ګټې او برکتونه چې د مشورې له لارې د انسان په برخه کېږي ، د ځانګړو هڅو، مادي امکاناتو او يواځيني فکر څخه هېڅکله هم لاس ته نه راځي. د مشورې ګټې په لنډه توګه دا دي:

۱- د مشورې يوه ګټه د نورو له فکرونو څخه مرسته تر لاسه کول دي. کله چې مشوره کوو، د نورو فکرونه او نظر يې ځانته را بولو او د خپل فکر تر څنګ يې په ځای ورکولو سره، خپل قدرت ته پراخوالی او لا ژوروالی ورکوو.

۲- مشوره د استعدادونو د غوړېدنې او د لېوالتيا د زياتوالي او په پايله کې د نورو لارو د پرانيستلو لامل ګرځي.

۳- مشوره کول سړي ته تېروتنې او اشتباه ګانې ور په ګوته کوي.

۴- مشوره هغه آزمون دی چې د هغې له لارې د نورو په فکري ځواک، پاملرنې او د زړه سوي اندازه باندې پوهيدلای شو.

۵- مشوره د مطلوبوالی اندازه او د غوره والي درجه لوړوي.

۶- مشوره د هغو نيوکو مخنيوی کوي چې په ځان غوښتونکو او له چا سره نه په لارتلونکو کسانو باندې کېږي.

د څه ډول کسانو سره باید مشوره وکړو؟ له هغه چاسره مشوره کولای شو چې په ژور فکر او خپلې سمې رایې سره په پېچلو مسایلو کې موږ ته لار راوښودلای شي. له دې کبله له هغه چا سره چې بدخویه او نامطلوب وي، باید مشوره ونه کړو.

په دیني آثارو کې راغلي چې له ډارن سره مشوره مه کوه، ځکه چې هغه د کار د پای ته رسیدو لاره سړي ته ګرانه ښکاره کوي. له بخیل سره مشوره مه کوه، ځکه چې تاله خپل مقصد څخه لرې ساتي؛ د حریص ( سراښ – وږی تږي) سره مشوره مه کوه ځکه چې د مال غونډول ستا په فکر کې درکوي. یو پوه په دې هکله چې له چا سره باید مشوره وکړو، داسې وایي:

د هغه چاسره باید مشوره وکړو چې :

۱- باید پوه وي ۲- باید آزاد او دینداره وي. ۳- باید دوست، ورور ( خیر غوښتونکی) وي؛ ۴- د راز شریک وي.

**نظم او روزنې ته اړتیا**:

له هغو مسایلو څخه چې سړی په عادي ورځني ژوندانه کې اړتیا ورته لري، یو یې هم په چاروکې د نظم مساله ده. د نظم او مقرراتو رعایتول د دې لامل ګرځي چې په لږه هڅه او زیار سره، ډېر کار سرته ورسوو او د وخت د ضایع کیدو مخنیوی وکړو. یوه له هغه مسایلو څخه چې د نظم او روزنې په تمرین کې د ماشوم لپاره آغېزمنه ده، د هغه لپاره د ورځنیو چارو د سرته رسولو په خاطر، د پلان درلودل دي. کله چې مور او پلار وغواړي چې خپل ماشوم ته د نظم رعایت ور زده کړي، باید لومړی د هغه د ورځنیو چارو د سرته رسولو لپاره پلان جوړ کړي او له هغه څخه وغواړي چې د ورځې په اوږدوکې هغه سرته ورسوي. د بېلګې په توګه ماشوم د خوب او بیداري، کورنۍ دندې ، درس لوستلو او د کورنۍ چارو د سرته رسولو لپاره یوه کوچنی کاري پلان ته اړتیا لري.

| سرليكونه | د مطالبو بيان |
|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | **كورنۍ** |
| ۲- لويې موخې | د بريالۍ كورنۍ پېژندنه |
| ۳- كوچنۍ موخې | له زده كوونكو څخه غوښتل كېږي چې د دې درس په لوستلو سره لاندې موخو ته ورسيږي.<br>• د كورنۍ غړو ته د درناوي په اهميت باندې وپوهېږي.<br>• د كورنۍ د غړو درناوي ته وهڅول شي.<br>• په ځينو مواردو كې د كورنۍ د نورو غړو د نظرونو زغمل بايد زده كړي.<br>• د تيريدنې او قربانۍ روحيه پكې پياوړ شي. |
| ۴- دښوونې لار | د متن لوستل، د لوست تشريح، پوښتنې او ځوابونه فكري هڅونه. |
| ۵- د زده كړې د اړتياوړ وسايل | درسي كتاب، د ښوونكي د لارښود كتاب، تخته، تباشير او د لوست اړوند انځورونه. |
| ۶- د ارزونې لارې چارې | ګرنيز ( شفاهي) عملي كار، ليكنه. |
| ۷- درسي ساعتونه | دغه لوست په دوو برخو وېشل كېږي او هره برخه يې په يوه درسي ساعت كې تدريس كېږي. |
| **لومړی برخه** (**په يوه درسي ساعت كې دې تدريس شي**) | **د لوست پيل** ( **۵ دقيقې**)<br>سلام اچول او له زده كوونكو سره دعاطفي اړيكو نيول او حاضري اخيستل. او نور مقدماتي كارونه.<br>**لومړی فعاليت** (**۵ دقيقې**)<br>دغه فعاليت له زده كوونكو سره د فكري هڅونې د دود له مخې سرته ورسوئ.<br>**د لومړي فعاليت ځواب**<br>لومړي د زده كوونكو ځوابونه واورئ او هغه پر تخته باندې وليكئ. وروسته بيا هغه درې ځانګړنې ( متقابل درناوی، د نورو د نظرونو زغمل او تيريدنه او قرباني) چې په دې درس كې تر بحث لاندې نيول شوي دي، مطرح كړئ او د كتاب متن تشريح كړئ. |

| | |
|---|---|
| | **لومړی متن** (۱۰ دقیقې)<br>د ( متقابل درناوي او د نورو د نظریو زغمل) ) د درس متن تشریح کړئ او بیا له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړئ.<br>**دویم فعالیت** (۱۰ دقیقې)<br>دغه فعالیت دې د پوښتنې او ځوابونود دود له مخې تر سره شي.<br>**د دویم فعالیت ځوابونه:**<br>په دې فعالیت کې له زده کوونکو څخه غوښتل شوي دي چې خپلې نظریې بیان کړي. له دې کبله، باید د هغوي نظریې پر تخته باندې ولیکل شي او لارښوونه ورته وشي.<br>**دویم متن** (**۵ دقیقې**)<br>د ( تېریدنې او قربانۍ ) متن زده کوونکو ته تشریح کړئ او د ډاډ ګېرنې په خاطر له هغوی څخه یو څو پوښتنې وکړئ.<br>**کورنۍ دنده** (**۵ دقیقې**)<br>زده کوونکو ته دنده وسپارئ چې ترراتلونکي اوونۍ پورې د درس لنډیز ولیکي، د پوښتنو ځوابونه پیدا کړي او د لوست وروستی فعالیت سرته ورسوي. |
| **دویمه برخه** (**په یوه درسي ساعت کې دې تدریس شي**) | **د لوست پیل**(**۵ دقیقې**)<br>سلام اچول او له زده کوونکو سره روغبړ کول. حاضري اخیستل او د نورو رومبنیو کارونو سرته رسول.<br>**د درس تکرار**(۱۰ دقیقې)<br>● کله چې د بل درناوی کوو، هغه هم زموږ درناوی کوي.<br>● په کورنۍ کې متقابل درناوی د دې لامل کېږي چې د کورنۍ ټول غړي ځانته د شخصیت او هوساینې احساس وکړي او د یوبل په وړاندې مؤدب او مهربان واوسي.<br>● حتی د یوې کورنۍ غړي یو له بله سره د خوښونې او د نظر اختلاف لري. موږ باید په کورنۍ او ټولنه کې د نورو په نظر یو باندې پوهیدل او زغمل زده کړو.<br>● د کورنۍ غړي باید یو د بل لپاره تېریدنه او قرباني وکړي.<br>● میندې او پلرونه د خپلو اولادونو لپاره له ځانه تېریدنه کوي.<br>● د ټولنې ټول غړي باید یو د بل لپاره له ځانه تېریدنه وکړي. |

**د پوښتنو ځوابونه** (۱۰ دقیقې)

۱- متقابل درناوی د دې لامل کېږي چې د کورنۍ غړي د شخصیت او هـو ساینې احساس وکـړي او یـو لـه بـل سـره مؤدب او مهربانه واوسي.

۲- د نورو د زورونې لامل ګرځو او د کورنۍ هوساینه ګډو ډوو.

۳-که چېرې د هغوی نظر بې معقولې او د منلو وړوي، باید وېې منو او له هغې پرته باید دوی تـه ووایـو چې د دوی نظر سم نه دی.

۴- قرباني د نورو لپاره دځانه تېریدنې په معناده. د بېلګې په توګه کله چې مور په کورکې د نورو په پرتلـه ډېـر کارونـه سـرته رسوو چې مور او پلار او خویندې وروڼه مو هو ساوي، دا د ځان تېریدنې یو ډول دی.

۵-څرنګه چې د کورنۍ غړي یو پر بل باندې ګران وي، نو غواړي چې د یوبل لپاره د هوساینې شرایط برابر کړي.

**وروستی فعالیت** (۱۰ دقیقې)

د ټولو زده کوونکو ځوابونه وګورئ او داډ ترلاسه کړئ چې ټولو خپله کورنۍ دنده تر سره کړې ده. له زده کوونکـو څخـه ( تکره ،منځنی او کمزوری) څو کسه د ټولګي مخې ته را وغواړی او ورته ووایئ چې خپـل ځوابونـه نوروتـه واوروي او تشریح یې کړي، د فعالیت ځواب د زده کوونکو په نظر پورې اړه لري او یوازې هغوی ته باید لارښوونه وکړئ.

**د څپرکي لنډیز** (۱۰ دقیقې)

دڅپرکي لنډیز دې زده کوونکي ولولي او تکرار دې کړي.

**د ښوونکو لپاره اضافي معلومات**

**د بریالی کورنۍ ځانګړتیاوې**

کورنۍ هم کېدای شي چې د یوه کس یا یوه سازمان غوندې بریالۍ او یا بریالۍ نه وي. بریالۍ کورنۍ ځانته ځانګړتیـاوې لري چې ډېرې مهمې یې دا دي:

۱- د بریالۍ کورنۍ غړي یو له بله سره مینه لري او ټول کړه وړه یې له ګرانښته سره وي.

۲- د کورنۍ غړي په ښکاره او څرګنده توګه خپل خپګان او همدارنګه د خپلې خوا خوږۍ احساس یو بل ته څرګندوي.

۳- دکورنۍ غړي د یو بل درناوی کوي او د یو بل نظرونه مني.

۴- د کورنۍ غړي په مینه سره یو له بل سره چلند کوي او د مور او پلار له خوا د اولادونـو پـه غېږکـې نیـول د کـورنیزې مینې او محبت څخه ډک یو عادي کار شمېرل کېږي.

۵- د کورنۍ غړي یو له بله سره په صادقانه ډول خبرې کوي او په مینې سره د یوبل خبروته غوږنیسي.

۶- د کورنۍ غړي په آسانۍ او آزاد ډول یو د بل سره خپله خوا خـوږۍ ښـکاره کـوي او د هـرې موضـوع پـه هکلـه لکـه: ماتي خوړل، وېرې او هغو زیانونو په هکله چې ورته رسیدلي او یا یې لیدلی وی، خبرې کوي.

۷- د کورنۍ د غړو لپاره انساني ژوند او بشري احساسات له بل هر شي څخه د پام او درناوي وړدي.

۸- مور او پلار په دې پوهېږي چې اغېز من هدایت او لارښـوونه پـه کـورنۍ کـې زده کېـږي لـه دې کبلـه د دې لارې د پوهېدو او زده کړې لپاره خپل بشپړ وخت او زور په کار اچوي.

۹- مور او پلار د هر بریالی مدیر په څېر د وخت په پرتله ډېر حساس وي او تل په دې لټه کـې وي چـې لـه هـر مناسـب وخـت څخه له خپلو اولادونو سره د خبروکولو لپاره سمه ګټه واخلي او هغه دې ته وهڅوي چې له وخـت څخـه مناسـبه ګټه ترلاسه کړي.

| سرلیکونه | د مطالبو بیان |
|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | **ټولنيزې ډلې**. |
| ۲- لويې موخې | د ډلې د صفتونو پېژندل. |
| ۳- کوچنۍ موخې | له زده کوونکو څخه هيله کېږي چې د دې درس په لوستلو سره لاندې موخو ته ورسيږي.<br>• په ټولنيز ژوند کې د ډلې اهميت درک کړي.<br>• د ډلې د جوړيدو د شرطونو سره بلدشي.<br>• د ټولنيزو ډلو ډولونه وپېژني او يوه له بلې څخه بېلې کړي..<br>• د لومړنيو او دويمو ډلو ځانګړتياوې وپېژني. |
| ۴- دښوونې لار | د متن د لوست تشريح، پوښتنې او ځوابونه. |
| ۵- د زده کړې د اړتيا وړ وسايل | درسي کتاب، د ښوونکي د لارښود کتاب، تخته، تباشير او د لوست اړوند انځورونه. |
| ۶- د ارزونې لارې چارې | ګړنيز(شفاهي) پرتله کول |
| ۷- درسي ساعتونه | دغه لوست په دريو برخو وېشل کېږي او هره برخه يې په يوه درسي ساعت کې تدريس کېږي. |
| **لومړۍ برخه (په يوه درسي ساعت کې دې تدريس شي)** | **د لوست پيل ( ۵ دقيقې)**<br>سلام اچول او له زده کوونکو سره روغبړ او احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخيستل او د نورو رومبنيو چارو سرته رسول.<br>**لومړی فعاليت (۱۵ دقيقې)**<br>دغه فعاليت د متن تحليل د دود له مخې له زده کوونکو سره تر سره کړئ.<br>**د لومړي فعاليت ځواب**:<br>د دوو ډلو مثلاً( په کوڅه کې د لوبو د ملګرو ډلې او په ښوونځي کې د ټولګيوالو ډلې) نومونه په تخته باندې وليکئ او د زده کوونکو څخه و غواړئ چې د هغو تر منځ ورته والی وښيي. د هغو نظرونه پر تخته باندې وليکئ. خو د پو ښتنو ځوابونه کولای شو چې په لاندې ډول وړاندې کړو: |

| | |
|---|---|
| ۱- په ډلو کې د غړیتوب د شرطونو ډېر مهم ورته والي دا دي:<br>الف: د ټولو ډلو غړي شریکې یا ګډې اړتیاوې لري.<br>ب: د دغو اړتیاوو د ترسره کولو لپاره، د ډلې جوړېدل ضروري دي، ځکه چې په یواځې توګه هغه نه ترسره کېږي.<br>ج- غړي ګډې ځانګړتیاوې لري. د بېلګې په توګه که چېرې ډله ورزشي ډله وي، نو ټول غړي بې باید په اړوند ورزشي څانګه کې لازم مهارت او تجربه ولري. که چېرې ډله هنري وي، باید ټول غړي بې د همغه هنر په هکله مسلکي پوهه او معلومات ولري.<br>۲- داسې نتیجه ترلاسه کوو چې:<br>الف: انسانان یو د بل مرستې ته اړدي.<br>ب: د انسان زیاتره نیمګړتیاوې په ټولنیزو ډلو کې تر سره کېږي.<br>ج- هر څوک په څو ډلو کې غړیتوب لري.<br>**لومړی متن ( ۲۵ دقیقې)**<br>درس شرحه کړئ. یو تن زده کوونکی دې درس په لوړ آواز خو په ځیر سره ولولي او نور زده کوونکي دې هغه ته غوږ ونیسي. وروسته د هغه درس په باره کې له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړئ چې ډاډه شی چې دوی په درس باندې پوه شوي دي. | |
| **د لوست پیل ( ۵ دقیقې)**<br>سلام اچول او له زده کوونکو سره روغبړ کول، حاضري اخیستل او ځینې نور لومړني کارونه تر سره کول.<br>**دویم فعالیت ( ۱۰ دقیقې)**<br>دغه فعالیت دې د متن د تحلیل د دود له مخې تر سره شی.<br>**د دویم فعالیت ځوابونه:**<br>کولای شی چې دوه ډوله ډلو ( لومړنی، دویمې) ته چې په متن کې بې څرګندونه شوې ده، اشاره وکړئ.لیکن زده کوونکي فکر کولوته وهڅوئ او ترې وغواړئ چې د دغه دوه ډوله ډلو په باره کې خبرې وکړي. د دوی نظرونه د شمېر له مخې پر تخته باندې ولیکئ. د هغه اصلی توپیرونو په هکله چې د لومړۍ او دویمي ډلو په منځ کې شته، له هغه جدول څخه چې د کتاب په متن کې بې یادونه شوې ده، ګټه واخلئ. | **دویمه برخه**<br>**(په یوه درسي ساعت کې دې تدریس شي.** |

| | |
|---|---|
| | **دويم متن (۲۵ دقیقې)**<br>متن زده کوونکو ته تشریح کړئ او د درس وروستنی جدول چې په هغه کې د لومړنۍ او دویمي ډلو توپیرونه موجود دي، په غور او حوصلې سره شرحه کړئ. په پای کې د زده کوونکو له زده کړې څخه د ډاډ ګېرنې په خاطر، له څو کسو زده کوونکو څخه پوښتنې وکړئ.<br>**کورنۍ دنده(۵ دقیقې)**<br>زده کوونکو ته دنده وسپارئ چې تر راتلونکې اوونۍ پورې د لوست لنډیز ولیکي،د پوښتنو ځوابونه پیدا کړي او د لوست وروستی فعالیت سرته ورسوي. |
| **دریمه برخه**<br>**( په یوه درسي ساعت کې دې تدریس شي)** | **د لوست پیل(۵ دقیقې)**<br>سلام اچول او له زده کوونکو سره روغبړ، احوال پوښتنه، حاضري اخیستل او نور ړومبني کارونه ترسره کول.<br>**د لوست تکرار (۱۵ دقیقې)**<br>• د دې دلیل له مخې چې انسانان ټولنیز موجودات دي او یو د بل مرستې ته اړتیا لري، تل ډلې جوړوي او خپل کارونه په ټولنیز ډول سرته رسوي.<br>• د دې لپاره چې ډله جوړه شي، باید هغه شمېر وګړي یو دبل ترڅنګ ودرېږي چې: لومړی ګډې موخې ولري او دویم یو دبل سره متقابل اړیکي ټینګ کړي.<br>• موږ په څو ډلو کې لکه: د کورنۍ ډله، د دوستانو ډله، د ټولګیوالوډله او داسې نورو کې غړیتوب لرو.<br>• ډلې د مختلفو اړخونو له مخې ډلبندي کولی شو. له دغو ډلبندیو څخه یې په یوه کې ډلې په لومړنۍ او دویمي ډلو باندې وېشلې دي.<br>• په لومړنی ډله کې د غړو شمېر لږ او د دوی په منځ کې اړیکې ډېرې دوستانه وي.<br>• په دویمه ډله کې د غړو شمېر زیات اود دوی تر منځ اړیکي رسمي او لږې دوستانه وي.<br>**د پوښتنو ځوابونه (۵ دقیقې)**<br>۱- هغه شمېر خلک چې ګډه موخه، ګډې ځانګړتیاوې او متقابل اړیکي ولري، ډله جوړوي.<br>۲- د دې دلیل له مخې چې موږ ټولنیز ( اجتماعي) یو، له مهربانۍ او کاري پلوه نوروته اړتیا لرو.<br>۳- د ګډې موخې، ګډو صفتونو او ځانګړتیاوو او متقابلو اړیکو درلودل. |

۴- په لومړنۍ ډله کې د غړو شمېر لږ اوترمنځ بې اړیکي دوستانه وي. په دویمه ډلـه کـې د غـړو شـمېر زیـات او د دوی ترمنځ اړیکي رسمي او لږ دوستانه وي.

۵- لکه دغړو د شمېر، موخې او د اړیکو د ډول د ځانګړتیاوو پر بنسټ.

**وروستنی فعالیت** (۱۰ دقیقې)

- د ټولو زده کوونکو ځوابونه وګورئ او ډاډ ترلاسه کړئ چې ټولو زده کوونکو کورنۍ دنده سرته رسولې ده.
- له زده کوونکو څخه څو کسه ( هوښیار، منځنی او کمزوری) د ټولګي مخې ته راوبـولئ او ورڅخـه وغـواړئ چې خپل ځوابونه نوروته تشریح کړي.
- د لومړنۍ او دویمې ډلو ځانګړتیاوو په پام کې نیولو سره، د دوی کورنۍ دنده وراصـلاح او لاربښـوونه ورته وکړئ.

## د ښوونکي لپاره اضافي معلومات

**د ډلې تعریف:**

ټولنپوهان ډله د دوو یا څو کسو د ترکیب څخه چې ګډه موخه، یو له بله سره څه ناڅه ټینګ متقابل اړیکي او په یو نه یو ډول یو له بله سره تړاو لري، جوړه شوې بولي، موږ نه شو کولی یوازې هغو خلکو ته چې په ناڅاپي او اتفاقي ډول په یوه ځـای کـې د یـو څـه وخت لپاره بې له دې چې یو له بله سره کوم اړیکي ولري، ډله و وایو.

**د ډلې معیارونه:**

هره ډله د ټولنپوهنې له نظره باید لاندې معیارونه ولري:

۱- د ډلې غړي باید په مستقیم او یا نا مستقیم ډول یو له بله سره متقابل اړیکي ولري.

۲- د ډلې غړي باید یو له بله سره داسې تړاو ولري چې که چېرې کومې پېښې په یوه باندې اغېزوکړ، پـه بـل بانـدې بې هم اغېز ولري.

۳- د ډلې د غړو ترمنځ اړیکي باید یو څه ټینګ وي ، په دې معنا چې باید په اونیوو، میاشتو حتی کلونو کلونو پایښت وکړي.

۴- لږ تر لږه د موخو په ځینو برخوکې چې ټول په هغو باندې د برلاسۍ لپاره هڅې کوي، سره ګډه واوسي.

۵- په پای کې د ډلې غړي باید ځانونه د ډلې په نامه وپېژني او په خپل منځ کې د یوې دوامداره اړیکـې موجودیـت تشخیص کړ ای شي.

**د ډلې جوړونه:**

۱- ډله رواني او ټولنیزې اړتیاوې لکه: په ډله پورې تړاو لرل، له پام لرنې لاندې نیول یا د غړو تر مینې او محبـت لانـدې راوستل، تر سره کوي.

۲- د ډلې غړي په ډله کې له رواني او ټولنیز امنیت څخه زیات برخمن وي.

۳- انسانان په ډله کې د فعالیتونو د اجرا کولو لپاره زیاته مینه او علاقه څرګندوي.

۴- په بېلابېلو ډلوکې ګډون لرل، د ډلې له غړو سره د هغو چارو په تر سره کولوکې چې په ځانګړي توګـه یـې نشـي تـر سره کولای، مرسته کوي.

۵- د ډلې غړي زیاتره هغه معلومات او اطلاعات یو د بل لپاره را غونډوي چې یو کس ته د هغو د راغونډولو امکان نه وي.

| سرليکونه | د مطالبو بيان |
|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | **ټولنيزې ډلې.** |
| ۲- لويې موخې | د يو کس او ډلې د متقابلو اغېزو پېژندل. |
| ۳- کوچنۍ موخې | له زده کوونکو څخه غوښتل کېږي چې د دې درس په لوستلو سره لاندې موخو ته ورسيږي.<br>• په يو کس باندې د ډلو له مختلفو اغېزو سره آشنا شي.<br>• په مختلفو ډلو کې د غړيتوب ګټې او زيانونه وپېژني.<br>• د ډلو د ګټو او زيانو نو په پام کې نيولو سره، د خپل غړيتوب لپاره د ډلې د ټاکلو په اهميت باندې پوه شي.<br>• په ډله باندې د يو کس له اغېزو سره آشنا شي. |
| ۴- دښوونې لار | د متن لوستل، د لوست تشريح فکری هڅونې |
| ۵- د زده کړې د اړتيا وړ وسايل | درسي کتاب، د ښوونکي د لارښود کتاب، تخته، تباشير او د لوست اړوند انځورونه. |
| ۶- د ارزونې لارې چارې | ګړنيز ، عملي کاراو ليکنه. |
| ۷- درسي ساعتونه | دغه لوست په دريو برخو وېشل کېږي او هره برخه بې په يوه درسي ساعت کې تدريس کېږي. |
| **لومړۍ برخه (په يوه درسي ساعت کې دې تدريس شي)** | **د لوست پيل ( ۵ دقيقې)**<br>سلام اچول او د زده کوونکو سره روغبړ او احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخيستل او د نورو لومړنيو چارو سرته رسول.<br>**لومړی فعاليت (۱۵ دقيقې)**<br>دغه فعاليت د فکري هڅونې د دود له مخې له زده کوونکو سره تر سره کړئ.<br>زده کوونکي بايد د هرې جملې لاندې دجدول په دويمه پايه کې، د يوې بلې جملې وړانديز وکړي چې په نوموړې ډله کې د دوی د فعاليت څرګندونه وکړي. |

| | |
|---|---|
| | **لومړي متن (۲۵ دقيقې)**<br>د لوست متن تشريح کړئ. له زده کوونکو څخه دې يو کس په لوړ آواز او ځيرتيا سره لوست ولولي او نور زده کوونکي دې هغه ته غوږ ونيسي. په پای کې د درس په اړوند له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړئ چې ډاډه شئ ،هغوی په درس باندې پوه شوي دي. |
| **دويمه برخه ( په يوه درسي ساعت کې دې تدريس شي)** | **دلوست پيل(۵ دقيقې)**<br>سلام اچول او له زده کوونکو سره روغبړ، احوال پوښتنه، حاضري اخيستل او نور لومړني کارونه ترسره کول.<br>دويم فعاليت (۱۵ دقيقې)<br>دغه فعاليت د فکري هڅونې د دود له مخې له زده کوونکو سره تر سره کړئ. د لومړي فعاليت په څېر، زده کوونکي بايد د جدول په دويمه پايه ( ستون) کې  د هرې جملې لاندې د يوې بلې جملې وړانديز وکړي ترڅو په هغه ډله کې د دوي د فعاليت ښکارندويي وکړي.<br>**دويم متن ( ۲۰ دقيقې)**<br>متن زده کوونکو ته تشريح کړئ. د لوست وروستنی جدول چې د لومړنی او دويمي ډلو توپيرونه په کې شته، په ځيرتيا او حوصلې سره تشريح کړئ. په پای کې د زده کوونکو له  زده کړې څخه د ډاډ ګېرنې د  ترلاسه کيدو په خاطر، له څو کسو زده کوونکو څخه پوښتنې وکړئ.<br>**کورنۍ دنده (۵ دقيقې)**<br>زده کوونکو ته دنده وسپارئ چې تر راتلونکي اونۍ پورې د لوست لنډيز وليکي، د پوښتنو ځوابونه پيدا کړی او د درس وروستنی فعاليت سرته ورسوي. |
| **دريمه برخه ( په يوه درسي ساعت کې دې تدريس شي)** | **د لوست پيل (۵ دقيقې)**<br>سلام اچول او د زده کوونکو سره روغبړکول او احوال پوښتنه،حاضري اخيستل او د نورولومړنيو چارو سرته رسول.<br>**د لوست تکرار ( ۱۰ دقيقې)**<br>• موږ په مختلفو ډلو کې غړيتوب لرو.<br>• په ډلو کې د غړيتوب لرل کېدای شي چې زموږ لپاره ډېر ګټوروي.<br>• په بدو ډلو کې غړيتوب کېدای شي چې زموږ لپاره ډېر زيانمن وي او موږ بايد په هغوکې له غړيتوب څخه ډډه وکړو.موږ د ډلې ځينې غړي په خپلو ناوړه کړو وړو سره، په ډله باندې منفي اغېز کوي.<br>• موږ بايد د غړو ناوړه کړو وړو په وړاندې بې توپيره ونه اوسو او بايد چې د هغو مخه ونيسو.<br>• د غړو په نامه کولای شو چې په ډله او د هغې په نورو غړوباندې اغېزوکړو او د دوی لپاره ګټور تمام شو. |

**د پوښتنو ځوابونه (۱۰ دقیقې)**

۱- د دې لپاره چې ټول غړی راضي وي او په پرېکړو کې ونډه واخلي.

۲- که چېرې داسې فکر کوو چې زموږ نظر ډېر سم دی، نو باید هڅه وکړو چې نور یې را سره ومنی، که چېرې نوریې راسره ونه مني او دهغوی نظر تر یوې اندازې پورې د منلو وړ وي، نو هغه منو، له هغې پرته له دوی څخه لرې کېږو.

۳- نه: ځینې ډلې ناوړه موخې لري او موږ باید د هغوی غړي نه شو.

۴- هغه باید د رهبرۍ له موقف څخه لرې کړو او پرېکړې یې ونه منو.

**وروستنی فعالیت (۱۰ دقیقې)**

- د ټولو زده کوونکو ځوابونه وګورئ او ډاډ ترلاسه کړئ چې ټولو کورنۍ دنده ترسره کړې ده.
- له زده کوونکو ( هوښیار، منځني او کمزوری) څخه څو کسه د ټولګي مخې ته درو غواړئ او ورته ووایئ چې خپل ځوابونه نوروته تشریح کړي.
- ځواب پخپله په زده کوونکو پورې اړه پیدا کوي او ښاغلی ښوونکی دې یوازې لارښوونه ورته وکړي.

**د څپرکي لنډیز (۱۰ دقیقې)**

دڅپرکي په لنډیزباندې له زده کوونکو سره کاروکړئ:

- له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په نوبت سره هغه ولولي او تشریح یې کړي.
- د اړتیا په صورت کې دې ښاغلی ښوونکي د زده کوونکو نظرونه ور اصلاح کړي.

## د ښوونکو لپاره اضافي معلومات

لکه څرنګه موچې ددرس په متن کې هم ولوستل، موږ چې په ډلو کې د یوه فردپه نامه ژوند کوو، له مختلفو اړخونو څخه د ډلې تر اغېزلاندې راځو، د بېلګې په توګه کله چې د لوبو په یوه ډله کې غړیتوب لرو او په وزګار وخت کې د والیبال لوبه کوو، نه شو کولی چې هر وخت موچې زړه وغواړي، لوبه وکړو بلکې هر وخت چې د ډلې د غړو له خوا وټاکل شو، هغه وخت باید لوبه وکړو، یا دا چې نه شو کولای چې د هرې لوبې وخت په خپله خوښه کم او یا زیات کړو بلکې د ډلې پرېکړې ته باید تسلیم شو او هو مره وخت لوبه وکړوڅومره چې په ډله پورې اړه لري، باید د ډلې پرېکړه په پام کې ونیسو.

له بله پلوه، فرد یا یو کس هم په ډله باندې اغېز لري، په ځانګړې توګه که چېرې د ډلې ځینې غړي تکړه، طراح او د نوښت خاوندان وي، کولای شي چې د ډلې په موخو او د ډلې د کارکوونکو په خپل منځې کړو وړو باندې زیات اغېزوکړي. د بېلګې په توګه د لوبو په همغه ډله کې چې د مخه یې یادونه وشوه، که چېرې د غړو څخه یو یې کوښښ او هڅه وکړي کولی شي چې د نورو غړو څخه وغواړي چې د نیم ساعت پر ځای هره ورځ یو ساعت لوبه وکړي چې زیات مهارت ترلاسه کړي او وکړای شي چې په محلي او یا ولایتي مسابقوکې ګډون وکړي. طبیعي خبره ده چې دغه اغېزه له مثبته اړخه د ډلې او د هغې د غړو په ګټه وي او له منفي اړخه د ډلې او د هغې د غړو په زیان وي.

**اتم لوست** **وخت: دوه درسي ساعتونه**

| سرليکونه | د مطالبو بيان |
|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | **په افغانستان کې د ژوند ډولونه ( د کوچيانو ژوند)** |
| ۲- لويې موخې | د کوچيانو د ژوندانه له ډول سره بلديدل. |
| ۳- کوچنۍ موخې | له زده کوونکو څخه غوښتل کېږي چې د دې درس په لوستلو سره لاندې موخو ته ورسيږي.<br>• د کوچيانو له استوګنځيونو سره آشنا شي.<br>• د کوچيانو له کورني ژوند سره آشنا شي.<br>• د کوچيانو د روزګار د تېريدو له لارو چارو سره آشنا شي.<br>• د کوچيانو دتګ راتګ د وسيلوله څرنګوالي سره آشنا شي.<br>• د کوچيانو د ستونزو مختلف اړخونه درک کړای شي. |
| ۴- دښوونې لار | د متن لوستل، د لوست تشريح، پوښتنې او ځوابونه. |
| ۵- د زده کـــــړې د اړتياوړ وسايل | درسي کتاب، د ښوونکي د لارښود کتاب، تخته، تباشير او د لوست اړوند انځورونه. |
| ۶- د ارزونې لارې چارې | ګړنيز، پوښتنې او ځوابونه |
| ۷- درسي ساعتونه | دغه لوست په دريو برخو وېشل کېږي او هره برخه يې په يوه درسي ساعت کې تدريس کېږي. |
| **لومړی برخه ( په يوه درسي ساعت کې دې تدريس شي)** | **د لوست پيل ( ۵ دقيقې)**<br>سلام اچول او له زده کوونکو سره روغبړ او احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخيستل او ځينې نور لومړني کارونه.<br>**لومړی فعاليت (۱۵ دقيقې)**<br>دغه فعاليت د پوښتنې او ځوابونو د دود له مخې د زده کوونکو سره تر سره کړئ.<br>۱- دغه پوښتنه د زده کوونکو په نظر پورې اړه لري.<br>۲- ځکه چې هغوی مالداردي، په وښواو څړځايونو پسې کوچېږي.<br>۳- د دوی اصلي کار. مالداري ده. |

| | |
|---|---|
| **لومړي متن** (۳۰ دقیقې)<br>د درس متن تشریح کړئ. له زده کوونکو څخه دې یو کس په لوړ آواز او ځیر سره لوست ولولي او نور زده کوونکي دې غوږ ورته ونیسي. په پای کې له زده کوونکو د درس په هکله پوښتنې وکړئ او ډاډ ترلاسه کړئ چې هغوی په درس باندې پوه شوي دي. | |
| **دلوست پیل**(۵ دقیقې)<br>سلام اچول او له زده کوونکو سره روغبړ، احوال پوښتنه، حاضري اخیستل او نور لومړني کارونه ترسره کول.<br>**دویم فعالیت** (۱۵ دقیقې)<br>فعالیت د پوښتنې او ځوابونو د دود له مخې له زده کوونکو سره تر سره کړئ.<br>۱- د کوچیانو ډېرې مهمې ستونزې د درس په متن کې یادې شوي دی، کولای شئ چې د درس متن ته مراجعه وکړئ.<br>۲-که څه هم د هرې ستونزې لپاره کولای شو چې د حل لارې وړاندې کړو، لیکن د دوی د ستونزو مور د دوی کوچېدل دي . لکه څرنګه چې په اساسي قانون کې بې وړاندوینه شوي ده که دولت د کوچیانو لپاره د یو ځای اوسیدو امکانات برابر کړي، ستونزې به بې په بیره سره کمې شي.<br>**دویم متن** ( ۲۰ دقیقې)<br>۱- له زده کوونکو څخه دې دوه کسه درس په لوړ آواز ولولي او نور دې غوږ ورته ونیسي.<br>۲- په پای کې د زده کوونکو له زده کړې څخه د ډاډ ګېرنې په خاطر، له څو کسو زده کوونکوڅخه پوښتنې وکړئ.<br>**کورنۍ دنده** (۵ دقیقې)<br>زده کوونکو ته دنده وسپارئ چې ترراتلونکي اوونۍ پورې د لوست لنډیز ولیکي. د پوښتنو ځوابونه پیدا کړي او د لوست وروستنی فعالیت ترسره کړي. | **دویمه برخه**<br>**( پــه یــوه درســي ســاعت کـــې دې تدریس شي)** |
| **د لوست پیل** (۵ دقیقې)<br>سلام اچول او د زده کوونکو سره روغبړ کول او احوال پوښتنه، حاضري اخیستل او نور. | **دریمه برخه**<br>**( پــه یــوه درســي ســاعت کـــې دې تدریس شي)** |

**لوموړني کارونه**

**د لوست تکرار (۱۰ دقیقې)**

- زموږ ځيني خلک د طبیعت په لمن کې ژوند کوي چې کوچیان ورته ویلی کېږي.
- کوچیان دمالدارۍ په چارو لګیاوي او د څرځایونو په پیدا کیدو پسې له یوه ځای څخه بل ځای ته کوچ کوي.
- د کوچیانو په کورنیو کې زیات شمېر خلک ژوند کوي چې یو له بله سره د څارویو په ساتنه کې مرسته کوي.
- د کوچیانو دنرو او ښځو په منځ کې یو ډول د کار وېش شته.
- کېږدۍ په د ښتوکې یو دبل اړخ ته درول کېږي.
- کوچیان په لاندې برخو کې زیاتې ستونزې لري: زده کړه، روغتیا او درملنه او په وچکا لی کې دوښوکموالی.

۱- څرنګه چې هغوی مالدار دي، د وښو په لټه کې له یوه ځای څخه بل ځای ته کوچېږي.

۲- د کوچیانو کورنۍ د نورو کورنیو په څېر خپل کارونه د کورنۍ دغړو په منځ کې وېشي. په ټولیز ډول ښځې زیاتره د کور چارې سرته رسوي او نارینه بهرنۍ چارې.

۳- هغوی خپلې کېږدۍ یو بل ته نېږدې په داسې ځایونو کې چې هلته اوبه وي، دروي.

۴- د هغوی زیات شمېر ښوونځي نه لري او اولادونه یې نا لوستي (بې سواده) پاته کېږي.

۵- زیاتره کوچیان کلینیکونو او روغتونونو ته لاس رسی نه لري.

۶- په هغه کلونو کې چې اورښت کم وي، کوچیان د خپلو څارویو د مړیدو لپاره له ستونزو سره مخامخ کېږي. په داسې کلونو کې دهغوی څاروي مړه کېږي.

## د ښوونکي لپاره اضافي معلومات

کوچیان هغه خلکو ته ویل کېږي چې مالداروي او د څرځایونو د پیداکیدولپاره تل له یوه ځای څخه بل ځای ته کوچېږي. کوچیان د کال په اوږدوکې په مختلفو لوړو سیموکې تګ راتګ کوي.

**د کوچیانو استوګنځی:**

د کوچیانو اصلی استوګنځی کېږدۍ دي. کېږدۍ هغو خېموته ویل کېږي چې ښځې یې دوزو له وژغنو څخه جوړوي . ښځې او نجونې لومړۍ دوزو وژغنې وربېشي او له هغو څخه تر لاسه شوي تارونه د اوږدو اونرمو ټختوپه شکل چې معمولی اوږدوالی یې د ۲-۱۲ مترو او پلنوالی یې نېږدې ۵۰ سانتی متره وي اوبدي. وروسته د دغو ټختو یو شمېر یې سره یو ځای کوي او کېږدۍ ترې جوړوي. کېږدۍ داسې اوبدل کېږي چې د ګرمۍ په وخت کې پوره هوا پکې چلېږي، لیکن د اورښت په وخت کې باران نه ور ننوزي. د کېږدۍ اندازه د کورنۍ په ټولنیز حالت او موقف، شتمنۍ او دهغې په لوی والي او کوچینوالي پورې اړه لري او د هغې مطابق لویه او وړه کېږي. د کوچیانو په منځ کې درې ډوله کېږدۍ موجودې دي .

۱- د کوچیانو د رئیس کېږدۍ.

۲- د خانانو او ملکانو یا مشرانو کېږدۍ.

۳-د منځنیو کورنیو اړوند کېږدۍ. له بله پلوه د اوړي او ژمي کېږدۍ هم یوه له بلې سره توپیر لري. ژمنۍ کېږدۍ پنډې وي او د دریدو ډول یې هم توپیر لري، په عمومي ډول د کېږد یو رنګ تور وي.

د کوچیانو ستونزې: له دې سره، سره چې د کوچیانو ژوند د طبیعت په لمن کې تېریږي، له ډېرې ښې هوا او ښکلو طبیعي منظرو څخه ګټه او خوند اخلي، بیا یې هم زیاتې ستونزې په مخ کې پرتې دي چې ځینې مهمې یې په لاندې ډول دي:

الف: د کورنۍ د غړو ناروغي، د روغتیایي خدمتونو او خوراکي توکو د کموالي او کوچ له ستړ یاوو څخه سر چینه اخلي.

ب: د څارویو ناروغي او مړه کېدل: د خوړو او اوبود کموالي او بېلابېلو ساري ناروغیو څخه سر چینه اخلي.

ج: د کلیوالو او کوچیانو تر منځ د څرځایونو پر سر شخړې کول.

د: د انسانانو او څارویو لپاره د داړونکو حیواناتو خطر.

هـ: دریابونو او درو ته د انسانانو او څارویو دتنګو، نریو لارو او غرنیو سیمو څخه درغړیدو خطر.

| سرليکونه | د مطالبو بيان |
|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | **په افغانستان کې د ژوند ډولونه (کليوالي ژوند)** |
| ۲- لويې موخې | د کليوالي ژوند له ډول سره آشنا کېدل. |
| ۳- کوچنۍ موخې | له زده کوونکو څخه هيله کېږي چې د دې درس په لوستلو سره لاندې موخو ته ورسيږي.<br>• د کليوالو د ژوند د چاپيريال سره آشنا شي.<br>• د کليوالو کارونه او مشغوليتونه وپېژني.<br>• د کليوالو د روزۍ پيدا کولو څرنګوالی درک کړي.<br>• د کليوالو کورنی ژوند وپېژني.<br>• د کليو الو ټولنيز ژوند او د دوی تر منځ د مرستې کولو ډولونه وپېژني.<br>• دکليوالو د ستونزو مختلف اړخونه درک کړي. |
| ۴- د ښوونې لار | د متن لوستل، د لوست تشريح، پرتله کول، د پروژې طريقه. |
| ۵- د زده کړې د اړتيا وړ وسايل | درسي کتاب، د ښوونکي د لارښود کتاب، تخته، تباشير او د لوست اړوند انځورونه. |
| ۶- د ارزونې لارې چارې | ګړنيز، او ليکنه. |
| ۷- درسي ساعتونه | دغه لوست په دريو برخو وېشل کېږي او هره برخه يې په يوه درسي ساعت کې تدريس کېږي. |
| **لومړی برخه**<br>**(په يوه درسي ساعت کې دې تدريس شي)** | **د لوست پيل (۵ دقيقې)**<br>سلام اچول او له زده کوونکو سره روغبړ او احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخيستل او ځينې نور لومړني کارونه.<br>**لومړی فعاليت (۱۵ دقيقې)**<br>دغه فعاليت د پرتله کولو يا پروژه اخيستلو د دود له مخې تر سره کړئ.<br>۱- د کليوالي او کوچياني کورونو تر منځ ډېر مهم ورته والي په لاندې ډول دي. |

| | |
|---|---|
| | **ورته والي**:<br>الف: دواړه انسان له ګرمۍ او یخنۍ څخه ژغوري.<br>ب: دواړه د کورنۍ د غړو لپاره د هوساینې ځایونه دي.<br>ج: دکلیوالو کورونه او د کوچیانو کېږدۍ دواړه په طبیعي چاپیریال کې جوړېږي او دروند کېږي او د ښاري کورونو په څېر یې شمېر زیات نه وي.<br>**توپیرونه**:<br>الف: کلیوالي کورونه له تیږو او خاورو نه جوړیږي،په داسې حال کې  چې کېږدۍ د وزو د وړغنو او داسې نورو څخه جوړیږي.<br>ب:کلیوالي کورونه په یوه ځای کې ځای پر ځای وي، په داسې حال کې چې  کېږدۍ له یوه ځایه  بل ځای  ته وړل کېږي.<br>ج: کلیوالي کورونه، د یخنۍ په وړاندې ډېر مقاومت لري.  تر دې اندازې پورې چې د هېواد د سړو سیمو اوسیدونکي ژمی په هغو کې تېروي په  داسې حال کې چې کېږدۍ نشي کولای چې په زیاته یخنۍ کې انسان وژغوري. په همدې خاطر کوچیان په ژمي کې ګرمو سیموته ځي.<br>۲- د کلیوالو اصلی شغل کرنه ده، لیکن د هغې تر څنګ د کورنیو ( اهلی) څارویو روزنه هم کوي. په داسې حال کې چې د کوچیانو اصلی شغل د څارویو روزنه ده او دهغې |
| **دویمه برخه**<br>**( په یوه درسي ساعت کې دې تدریس شي)** | تر څنګ کله کله سوداګري هم کوي.<br>**لومړی متن** (۳۰ دقیقې)<br>د درس متن تشریح کړئ. له زده کوونکو څخه دې یو کس په لوړ آواز او ځېر سره درس ولولي او نور دې هغه ته غوږ ونیسي. په  پای کې له زده کوونکو څخه د درس په باره کې وپوښتئ چې  ډاډه شئ چې هغوی درس زده کړی دی.<br>**د لوست پیل** (۵ دقیقې)<br>سلام اچول او له  زده کوونکو سره روغبړ کول، احوال پوښتنه، حاضري اخیستل  او نورلومړني کارونه. |

| | |
|---|---|
| | **دویم فعالیت (۱۵ دقیقې)**<br>فعالیت د پوښتنې او ځوابونو د دود له مخې له زده کوونکو سره ترسره کړئ.<br>۱- کلیوال په کرنه، ښوالۍ او مالدارۍ بوخت دي.<br>۲- د ښاري ژوند په پرتله یې ډېر خوند په دې کې دی چې پاکه او طبیعي هوا لري، د کوچیاني ژوند په پرتله یې ډېر خوند په دې کې دئ چې خلک یې مجبور نه دي چې هره ورځ له یوه ځایه بل ځای ته وکوچېږي.<br>۳- دکلیوالو ستونزې د درس په متن کې یادې شوي دي. مهرباني وکړئ هغه وګورئ.<br>**دویم متن (۲۰ دقیقې)**<br>۱- متن زده کوونکو ته شرحه کړئ.<br>۲- دوه کسه زده کوونکي دې درس په لوړ آواز ولولي او نور دې غوږ ورته ونیسي.<br>۳- په پای کې د زده کوونکو له زده کړې څخه د ډاډ ګېرني په خاطر، له څو کسو زده کوونکو څخه پوښتنې وکړئ.<br>**کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**<br>زده کوونکو ته دنده وسپارئ چې تر راتلونکي اونۍ پورې د درس لنډیز ولیکي. د پوښتنو ځوابونه پیدا کړي او ددرس وروستنی فعالیت سرته ورسوي. |
| **دریمه برخه (په یوه درسي ساعت کې دې تدریس شي)** | **د لوست پیل (۵ دقیقې)**<br>سلام اچول او له زده کوونکو سره احوال پوښتنه، حاضري اخیستل او نور لومړني کارونه.<br>**د لوست تکرار (۱۰ دقیقې)**<br>• زموږ د هېواد زیات شمېر خلک په کلیو کې اوسیږي.<br>• کلي هغه ځای ته ویل کېږي چې یو شمېر کورونه یو د بل تر څنګ جوړ شوي وی او اوسیدونکي یې د کرنې او مالدارۍ په چارو بوخت وي.<br>• په کلیوالي کورنیو کې د کورنۍ ټول غړي په مینه سره یو د بل ترڅنګ ژوندکوي.<br>• د کلیو خلک یو له بله سره د مهربانۍ ډکې تودې اړیکي لري او په چاروکې یو له بله سره مرسته کوي.<br>• کلیوال خپل وزګار وختونه یوځای یو د بل ترڅنګ تېروي.<br>• کلیوال د روغتیا، زده کړې اود کرنې د وسایلو له پلوه ډېرې ستونزې لري او طبیعي آفتونه ډېر زیانونه ورته رسوي. |

**د پوښتنو ځوابونه** (۱۰ دقیقې)

۱- دوی په ټولیز ډول د کرنې، بڼوالۍ او مالدارۍ چارې سرته رسوي.

۲- دوی په غم او بده ورځ کې یو له بل سره شریک دي او له یو بل سره مرسته کوي.

۳- یوه اندازه یې خپله مصرفوي او زیاتي برخه یې بازار ته وړاندې کوي او پلوري یې؟

۴- د اوبو بند، پل، لار، د ویالې او کاریز پاکول او د کرنې د حاصلاتو ریبل.

۵- کلیوال زیاتې ستونزې لري چې ډېرې مهمې یې دادي: روغتیا، زده کړه، د ځمکې او د کرنې د وسایلو کموالی او له طبیعي پېښو څخه اوښتي زیانونه.

**وروستنی فعالیت** (۱۰ دقیقې)

- د ټولو زده کوونکو ځوابونه وګورئ او داډ ترلاسه کړئ چې ټولو زده کوونکو کورنۍ دنده سرته رسولې ده.
- له زده کوونکو نه څوکسه ( تکړه، منځنی او کمزوری) د ټولګي مخې ته را وغواړئ او ورته ووایئ چې خپل ځوابونه نوروته ولولي.
- د دوی د کارو نومثبت او منفي اړخونه ورته وښیئ او کورنۍ دنده یې ورته اصلاح کړئ.

## د ښوونکي لپاره اضافي معلومات

کلی د انسان د استوګنې یو ځانګړې ډول دی. هغه څوک چې په کلیو کې اوسیږي، د کرنې او څارویو د روزنې له درکه خپله روزې ترلاسه کوي مخ په وده هېوادونو کې د کار د قوې زیاته برخه د کلیوالي کرنې په چاروکې لګیاوي. په دې هېوادونو کې کرنه د اقتصادبنسټ جوړوي. د ځمکې پرسر داسې څوک نشته چې کرنیزو او کلیوالی تولیداتوته اړتیاونه لري.. دغه خبره د کلي او کلیوالي ژوند د اهمیت او هغه رول څرګند ونه کوي چې کلیوال یې د ټولنو په اقتصادي ژوندانه کې سرته رسوي.

**د کلیوکورونه:**

د کلیوکورونه له یوې خوا د اقلیم او طبیعي چاپېریال د شرایطو تر آغېز لاندې وي او له بله پلوه د کورنیو د ژوندانه په کچې پورې اړه لري.

کلیوال دخپلو استوګنځیو په جوړولو کې د خپل چاپېریال له هغو امکاناتو څخه ګټه اخلي چې طبیعت یې د دوی په واک کې ورکوي.

له دې کبله ده چې په مختلفو سيمو کې له مختلفو موادو څخه په لاندې ډول کاراخلي.

۱- هغه کليوال چې ځنګلونوته نيږدې په کليو کې ژوند کوي، د کورونو په جوړولو کې زياتره له لرګيوڅخه کار اخلي.

۲- د غرنيو سيمو په کليو کې تيږې او خاورې د طبيعي ودانيو د جوړولو غوره توکي دي.

۳- په دښتو کې له ختو او خښتو څخه د غټو ديوالونو لرونکي کورونه جوړوي.

**کليواله کورنۍ:**

کليواله کورنۍ په ټوليز ډول هغه ډله ده چې له ښځې، مېړه، څو کسواو لادونو، نيکه او نيا څخه جوړېږي. په ځينو کورنيو کې امکان لرې چې ترونه، ترينديې او يا يو شمېر نور په دوی پورې اړوند خلک هم موجودوي.

ښځه،مېړه، زامن او لوڼې په کليوالي کورنيو کې ډول،ډول دندې لري. د بېلګې په توګه د مېړه يا پلار دنده په کورنۍ کې د کورنۍ سر پرستي ده. دی بايد د خپلې کورنۍ خرڅ پيدا کړي او د کورنۍ د مشر تا به چارې اداره او له هغوی څخه سرپرستي وکړي.

ښځه له دې سره ،سره چې د کور مېرمن ده، د ماشومانو د ساتنې او روزنې درنده وظيفه ور په غاړه ده، په زياتو کليوکې د کرنې په چارو، د څارويو په روزنه او لاسي صنايعو کې هم برخه اخلي. ماشومان له هغه وخته چې د کار کولو طاقت پيدا کوي د خپل مور او پلار سره په اقتصادي چاروکې مرسته کوي. د کليوالي کورنۍ د ژوندانه ځانګړې شرايط د اغوښتنه کوي چې له خپل ټول وس او امکاناتو څخه د ژوندد اداره کولو لپاره کار واخيستل شي چې د ماشومانو د کار قوه هم له دغو امکاناتو څخه شمېرل کېږي.

لسم لوست | وخت: دوه درسي ساعتونه

| سرليکونه | د مطالبو بيان |
| --- | --- |
| ۱- د لوست موضوع | **په افغانستان کې د ژوند ډولونه ( بناري ژوند)** |
| ۲- لويې موخې | د بناري ژوند له ډول سره آشنا کيدل. |
| ۳- کوچنۍ موخې | له زده کوونکو څخه غوښتنه کېږي چې د دې درس په لوستلو سره لاندې موخو ته ورسيږي.<br>• د بنار د جوړښت په هکله يو څه معلومات پيدا کړي.<br>• د بناري کورنيو د ژوند په اړه پوه شي.<br>• له بناري مشغوليتونو سره بلدشي. د کوچيانو او کليوالو له مشغوليتونو سره د هغوی په توپيرونو باندې پوه شي.<br>• د بناري ټولنيز و اړيکو ډولونه وپېژني.<br>• زموږ د هېواد د بناري ژوند له ستونزو سره آشنا شي. |
| ۴- دښوونې لار | د متن لوستل، د لوست تشريح، پوښتنې او ځوابونه د زده کړې فعاليت |
| ۵- د زده کړې د اړتيا وړ وسايل | درسي کتاب، د ښوونکي د لارښود کتاب، تخته، تباشير او د لوست اړوند انځورونه. |
| ۶- د ارزونې لارې چارې | ګرنيزې، پوښتنې او ځوابونه. |
| ۷- درسي ساعتونه | دغه لوست په دريو برخو وېشل کېږي او هره برخه يې په يوه درسي ساعت کې تدريس کېږي. |
| **لومړی برخه ( په يوه درسي ساعت کې دې تدريس شي)** | **د لوست پيل ( ۵ دقيقې)**<br>سلام اچول او له زده کوونکو سره روغبړ او احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخيستل او ځينې نور لومړني کارونه.<br>**لومړی فعاليت ( ۱۰ دقيقې)**<br>فعاليت د زده کړې د فعاليت د دود له مخې تر سره کړئ.<br>۱- په ښار کې زيات کورونه او لويې ودانۍ موجو دې وي، په داسې حال کې چې په کلي کې د کورونو شمېر لږ وي. |

| | |
|---|---|
| ۲- باید د زده کوونکو نظر واورو او دلایلو ته یې غوږ ونیسو.<br>**لومړی متن (۳۰ دقیقې)**<br>د لوست متن تشریح کړئ. له زده کوونکو څخه دې یو کس په لوړآواز او ځېر سره لوست ولولي او نور زده کوونکي دې هغه ته غوږ ونیسي. په پای کې د زده کوونکو له زده کړې څخه د ډاډ ګېرنې په خاطر، له هغوی څخه پو ښتنې وکړئ. | |
| **د لوست پیل (۵ دقیقې)**<br>سلام اچول او له زده کوونکو سره روغبړ او احوال پوښتنه، حاضري اخیستل او نور لومړني کارونه.<br>**دویم فعالیت (۱۰ دقیقې)**<br>فعالیت د زده کړې د فعالیت او د تمرین د دود له مخې له زده کوونکو سره سرته ورسوئ.<br>۱. د ښاري ژوند ستونزې د کتاب په متن کې یادې شوې دي. مهرباني وکړئ هغه وګورئ.<br>۲. هره ستونزه ځانته د حل ځانګړې لار لري. لومړی د زده کوونکو له خوا د حل لاروته غوږ ونیسئ او هغه په ترتیب سره پر تخته باندې ولیکئ. په پای کې د حل سمې لارې ومنئ او د حل ناسمې لارې اصلاح کړئ.<br>**دویم متن (۲۵ دقیقې)**<br>۱- متن زده کوونکو ته تشریح کړئ.<br>۲- له زده کوونکو څخه دې دوه کسه لوست په لوړ آواز ولولي او نور دې غوږ ورته ونیسي.<br>۳- په پای کې د زده کوونکو له زده کړې څخه د ډاډ ګېرنې په خاطر، له هغوی څخه پوښتنې وکړئ.<br>**کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**<br>زده کوونکو ته دنده وسپارئ چې تر راتلونکي اوونۍ پورې د لوست لنډیز ولیکي، د پوښتنو ځوابونه پیدا کړي او د لوست وروستنی فعالیت سرته ورسوي.<br>**د لوست پیل (۵ دقیقې)**<br>سلام اچول او د زده کوونکو سره روغبړ کول، احوال پوښتنه، حاضري اخیستل او نور ړومبني کارونه.<br>**د لوست تکرار(۱۰ دقیقې)**<br>• په ښار کې زیات شمېر خلک یو د بل تر څنګه اوسیږي.<br>• د ښاري کورنیو د غړو شمېر عموماً د کلیوالي او کوچیانو د کورنیو د غړو له شمېر څخه کم وي.<br>• د ښار اوسیدونکي زیاتره په اداري، سوداګریزو او صنعتي چارو بوخت وي. | **دویمه برخه (په یوه درسي ساعت کې دې تدریس شي)** |

- په ښار کې ټولنيزې اړيکې زياتره د کاري موخو په خاطر نيول کېږي او د کورنۍ او دوستانو له چاپېريال څخه پرته، په نورو اړيکو کې مينه او ګرانښت کم ليدل کېږي.
- د ښار ځينې ډېرې مهمې ستونزې دا دي: برښنا، اوبه، د ځځلو اچول، ناولې هوا او د نفوسو ډېروالی.

**د پوښتنو ځوابونه** (۱۰ دقيقې)

۱- ښار هغه ځای ته ويل کېږي چې يو زيات شمېر خلک هلته يو د بل ترڅنګ استوګنه کوي.

۲- په ښاري کورنيو کې د غړو شمېر لږ وي. ښاري کورنۍ لږ اولادونه لري او په زياتر و ښاري کورنيو کې ښځه او مېړه دواړه بهر کار کوي.

۳- په دولتي ادارو، سوداګريز و او صنعتي مرکزونو کې د کار له درکه.

۴- په ټولنيزو اړيکو کې بې مينه او ګرانښت، لږ وي.

۵- زموږ د هېواد د ښارونو سترې ستونزې د درس په متن کې يادې شوي دي.

مهرباني وکړئ هغه وګورئ.

**وروستنی فعاليت** (۱۰ دقيقې)

- د ټولو زده کوونکو ځوابونه وګورئ او ډاډ ترلاسه کړئ چې ټولو کورنۍ دنده تر سره کړي ده.
- له زده کوونکو څخه څو کسه ( هوښيار، منځنی او کمزوري) د ټولګي مخې ته دروغواړئ او ورته ووايئ چې خپل ځوابونه نوروته واوروي.
- د ښاري ژوند خوندونه او ستونزې د درس په متن کې يادې شوي دي. د زده کوونکو د فعاليت د ارزونې لپاره د درس محتوا په پام کې ولرئ.

**د څپرکي لنډيز** (۱۰ دقيقې)

د څپرکي لنډيز زده کوونکو ته ولولئ. د زده کوونکو له څو کسو څخه وغواړئ چې په وار سره لنډيز په لوړ آواز ولولي او نورغوږ ورته ونيسي.

## .د ښوونکي لپاره اضافي معلومات

د بشر د ژوندانه دچاپېريال څخه يو بې هم ښاردی چې زيات شمېر خلک پکې اوسيږي او د خلکو ګڼه ګوڼه پکې زياته وي.

څرنګه چې په ښار کې ډېر خلک سره را غونډشوي وي نو له دې کبله اوسيدونکي بې په هغو کورونو کې اوسيږي چې يو بل ته نيږدې جوړ شوي وي. له يو زيات شمېر کورونو څخه کوڅه، له څو کوڅو څخه واټ او له زياتو واټونو څخه ښار جوړيږي.

په لویو ښارونو کې ژوند کول ځانته خاص فرهنگ او دود او دستور لري. ښارونه په ټولیز ډول د مختلفو فرهنگونو، مفکورو، ټولنیز و او اقتصادي طبقو او تخصصونو د یوځاي کیدو ځای دی.

**په ښاري سیمو کې متقابل اړیکي:**

په ښاري ټولنه کې د خلکو ترمنځ اړیکي ډېرې دوستانه نه وي په دې معنا چې خلک بې بې له دې چې یو بل سره وپېژني، یو له بله سره سستې اولږ عمره اړیکې ټینگوي. ښاري ټولنه له زیاتو بېلا بېلو او رنگ رنگ خلکو څخه جوړه شوي ده چې سرې پکې ناپېژندلی پاتی کېږي او له خپلې خوښې او غوښتنې سره سم ژوند په کې کوي.

په یوه دارنگه چاپېریال کې، کیدای شي چې انسان له ورانکار و ډلو سره یو ځای شي او د دغه ډلو دناوړه ارزښتونو په منلو سره په گرده ټولنه باندې د واکمنو ارزښتونو پر خلاف عمل او فعالیت وکړي بې له دې چې د خپل وجدان په وړاندې شرمنده شي او یا وزوریږي.

**د ښار او کلي تر منځ توپیرونه:**

**د ښار او کلي ترمنځ ځینې ستر او مهم توپیرونه دا دي:**

۱- د کلیوالو په منځ کې دودیز او منل شوي ارزښتونه زیات اغېز لري. د دوی ترمنځ مینه ناکه راشه درشه د منل شوو ارزښتونو څرگندوی ده چې په ښاریانوکې هغې ته لږه پاملرنه کېږي.

۲- ټولنیز اړیکي او تماسونه: په کلیوالي ټولنه کې د خلکو تر منځ اړیکي او تماسونه د پېژند گلوی پربنسټ ولاړوي یعنې دا چې دوی یو بل په نوم پېژني په داسې حال کې چې په ښاریانو کې تر ډېره حده اړیکو بدلون کړی دی او اړیکې غیر شخصي، غیر مستقیمې او رسمي بڼه لري.

۳- چل ول، جرمونه او خطاگانې په کلیو کې د ښارونو په پرتله لږ وي.

۴- تخصصي کیدنه: په ښارونو کې زیاتره فعالیتونه تخصصي دي، په ښارونو کې خلک د تخصص لپاره په فني، علمي، اداري او داسې نورو چارولگیاوي. په داسې حال کې چې په کلي کې د کارونو د آسانتیا له وجې په ټولیز ډول خلک د ټولو کارونو د تر سره کولو وړتیا لري او ډېر لږ کارونه ځانگړي تخصص ته اړتیا لري.

۵- ټولنیزخوځښت: په ښاري ټولنه کې ټولنیز خوځښت زیات دی او خلک کولای شي چې له یوه ټولنیز منزلت څخه بل لوړ او یا ټیټ مقام ته وخوځیږي، په داسې حال کې چې په کلي کې دغه ډول ټولنیز خوځښت لږ دی.

**ښاري ستونزې:**

ښارونه ځانته ځانگړې ستونزې لري. زموږ د هېواد ښارونه داسې ستونزې لري چې حتی ډېرې یې د نورو

هېوادونو له ستونزو سره هم توپيرلري. زموږ د هېواد د ښارونو ځيني مهمې ستونزې دا دي:

۱- د خلکو ګڼوالی: په ښارونو کې د خلکو ګڼوالی زيانمنې پايلې له ځانه سره لري. د خلکو تر منځ يو د بل پوره پېژندنه او آشنايي کمېږي.د استوګنې چاپېريال تنګوي او په ښارکې تګ را تګ ستونزمن کوي.

۲- د کورونو کموالی: زموږ په ښارونو کې استوګنځي ډېر لږ دي او زياتره خلک په ناوړه او غير سټنډرډ کورنو کې ژوند کوي.

۳- د ژوند د چاپېريا ل ککړتياوي ( د هوا، اوبو، خاورې او آواز ککړتيا) دغه ککړتياوې اوس په ډېر و ښارونو کې له خپلې اندازې څخه زياتې شوي دي چې د خلکو له ګڼوالي، د موټرو له زياتوالي او داسې نورو څخه سر چينه اخلي.

۴- د خځلو اچونه. ۵) برښنا او ګاز.

روغ او جوړ ښار، کوم ښاردئ؟

له روغ او جوړ ښار څخه مطلب، د هغه ښار چاپېريال دی چې په هغه کې د زده کړې، روغتيايي ، حقوقي، ورو راوړو او دخځلو د را غونډولو موسسې وجود ولري.د يوه روغ او جوړ ښار ځينې معيارونه په لاندې ډول دي:

- د پاکو او صحي اوبو سرچينې.
- روغ جوړ او پوره استوګنځي.
- روغتيايي آسانتيا وې.
- د ټولو لپاره کار او شغل.
- پاکه هوا.
- مناسب ټوليز وړل راوړل ( حمل و نقل).